# کشت ؤ مات به ئې هر و مرو له روخه

د ژوند پاڼه دې سوه ژېړه هم پړوخه
د ځوانۍ لښته دې شوله زړه اوخه

چې دې چاغ سپین چنغرک سو ګنجي ګنجي
ګلوه لنډ لنډ نفس دې سر ته روخه

چې دې ابښې د ژوندون سره شطرنج دي
کشت ؤ مات به ئې هر و مرو له روخه

د اجل پياله به تېره کي نه ستوني
که نرخه ده، که زموخته ده، که ستوخه

د تور قبر تاريکۍ له دې څه پووره
چې به ګور کې بېرېدلى بلاله اوخه

د هغه قادر حکيم نه شه به حيله
چې ئې خپل خليل راوېوست له ناروخه.

دا دې څه وکړه تر شعر دې لاس وکښه
څه به موهې له دې نوم، له دې رسوخه

«رحمت الله» به سپين مخ حشر کي جميله
به ګناه ګنده، بنده ئې کړي منسوخه

مرحوم «رحمت الله بابا»

# کندهار

میاشتنی خپرونه

ادبی . تاریخی . اجتماعی . علمی

مسئول چلوونکی:

ا،م «کرزی»

اداره: د شهیدانو واټ

د دولتی مطبعی څنګ ته



کالنی «بیه»

په کند هار کی [۳۸] افغانی

په دننه مملکت کی [۳۲] «

په دباندنیو هیوادو کی یو ډالر

د ۱۳۴۱ لمریز کال د [میزان] او [عقرب] میاشتی

د ۱۹۶۲ میلادی کال د [اکتوبر] او [نومبر] میاشتی

د دریم کال ۷-۸ ګڼه

پرله پسې ګڼه [۳۱-۳۲]

## ددې ګڼې مضامین

# زمانه د ترقۍ پر خوا روانه ده

له هغې نېټې څخه چې انسان د غرو په غارو کې د ډېر ساده ژوند دراوړی بیا تر ن چې ښه اوږدو ماڼیو کې استوګنه کوي د تاریخ په ډېر اوږدو دورو کې چې بې شمېره پېړۍ ئې په غېږ کې نیولې دي

د انسان سره یو دایمي نه بېلېدونکی فکر موجود و، هغه دا چې په څه راز سره وکړای شي چې د ژوند مشکلات له منځه ایري کړي او د خپل بقا او لذت د پاره لارې چارې وپلټي.

د همدغه فکر په رڼا کې انسان په پېړیو پېړیو خوارۍ ګاللې ده او لا په دې پسې دی چې نور هم په دې لار کې پرمخ ولاړ شي ځکه نه ارزوګانې پای لري او نه د بشري دماغ ابتکار او اختراع اره

کوم حد ټاکل کېدای شي. انفرادیت د همدې غرض د پاره خاتمه ومونده چې په هغه کې د ژوند نیمګړتیاوې پوره کېدای شوای او نه د اړو پېښو سره مجادله کېدای شوای که څه هم په

انفرادیت کې ځینې آزادۍ موجودې وې خو انسان د خپلو مترقي افکارو د فشار او د ژوند د بهترۍ په منظور له هغه څخه تېر او جمعیت ته داخل شو.

په جمعیت کې فردي فکر، ځانګړي خواهشات او د ژوند نور ممیزات منحل شول د فرد آرامي د جمعیت په آرام ژوندانه کې ونښتل شوه او د جامعې نېکمرغي د افرادو سعادت وشمېرل شو فردي خودسرۍ له منځه ولاړې او انسان د جمعیت

د اخلاقو، د سانېړو او اقتصادي معاملاتو تابع شو. څرنګه چې فردیت له روابطو څخه استغنا اړولی او جمعیت د روابطو او تعاملاتو مجموعه تشکیلوي د اهم په دې غرض چې هغه د انساني ضمیر پټ راز

د تکامل په لوري وخوځوي او د ژوند په حالاتو کې تحول راولي. او د هغه تحول په سیوري کې انسان خپل نیمګړي ارمانونه پوره او د خپل محیط چارې تر نظام او قانون لاندې راولي څو چه

وکړای شي چې خپل تکاملي سیر ګړندی کړي او ځان د مقصد ویړاونه ورسوي.

په دې کې شك نشته چې د تاریخ په اوږده زمانه کې پر انساني ټولنو ډېر ناوړه حالات هم راغلي

دي چې هغه نه د انسان اصلي غایه وه او نه د جمعیت روح هغه منلای شوای که د اجتماعي تحولاتو و سیر ته بې خبر شو د هغه ناوړو حالاتو علت په هم د انسان په هغه فردي خودخواهیو کې وپلټو کوم

چې ده له انفرادیت څخه و جمعیت ته په سوغات راوړل.

لېکن څرنګه چې اجتماعي شعور هغه منلای نه شوای او د جمعیت له روح سره سازګار نه وو

نو د هغو عواملو په ضد سختې مجادلې روانې شوې چې د پېښو د تاریخ په استناد یوه ډېره اوږده زمانه یې بر کې نیولې ده. ترڅو چې د انفرادي ژوند اخلاق، ممیزات او د فکر څرنګوالی په جمعیت کې حل نه شو تر هغو پورې ولسي ازادي

د خپلې مجاهدې څخه لاس واخیست درسته ده چې د علم او مدنیت پرمخ تګ: اجتماعي شیرازې
د بقا باعث ګرځېدلی دی او جامعه ئې د باهمي منافعو دپاره سره کلکه تړلې ده. خو څرنګه چې
دې راز ژوندهم د انساني ارزې څخه استثمار وکړ او د نېړو بېړ بو دغلامۍ خاطرې بیا راژوندي
شوې نو ځکه اجتماعي وجدان ولړزېدی او دهغه په مقابل کې ئې خپل سخت عکس العمل
څرګند کړ.

څرنګه چې دا عصر د ماشین دی او ماشین غوښت
چې د خپل مالک په فرمان جمعیت د ځان تابع کړي او دهغو د زحمت محصول د جملې قوانینو په اساس
په ناړاک بوسي څرنګه چې تر بوو خته پورې ئې هم د خپلو مرستیالو په وسیله چې د ریا او تزویر
په جامه کې ئې د جمعیت د پاک ضمیر او سپېڅلي احساساتو څخه ناوړه استفاده وکړه لیکن دا بار
هم د جماعت پراوږو دروند شو او واس په دې وپوهېدی چې استعمار او استثمار په نوي پرده کې
زموږ و تباهۍ او فنا ته ملا تړلې ده. په دې دروسته ئې عکس العمل کې جمعیت د انفرادیت اساسونه
بېخي له منځه ونړول او د انفرادیت له ژوند سره ئې د همېشه دپاره وداع وکړه. کله چې د
انفرادیت توري وربخې د جمعیت له آسمان څخه شوې په شو سوې نو د الله د حق او عدالت لمر وځلېدی
او هرچا خپل ځان او جهان ولیدی. سترګې ویرانستل شوې حقیقت د شیو نو ویلتمل شو او
ذهنیتونه د انفرادیت دغلامۍ او خرافاتو څخه آزاد شو. په دې روښانه ماحول کې انسان د
د ځان او کایناتو هستي کشف کړه او د نوي ژوند په دوره ئې پیل وکړ دغه دی چې د دې
روښانه ژوند مظاهر ورځ په ورځ انکشاف مومي او د بشریت یوه زیاته برخه د خوږې
وروړ ګلوی په لوري روان دي او د تکامل پړاونه یو په بل پسې لاندې کوي.

نېږدې ده هغه ورځ چې دا لمر دې پرتواله تر یه خپلې وړانګې وپاشي او جمعیت دې خپل
مطلوب پړاو ته وروسته له ډېرو زحمتونو او محرومیتونو څخه په نېکمرغۍ ورسیږي.

ا،م،د کرزی

بساغلي «آشنا»

# ادبي آثار

په هغه وخت کې چې د ادبي تعبير د شمول ساحه محدوده وه او ادب و نننۍ پراخوالي ته نه و رسېدلی خلکو هغه آثار ادبي بلل چې صنعتي قيمت به ئې درلود، او هغه آثار چې صنعتي او ارتستيکي رنګ ئې نه درلود د ادب يا ادبياتو په جمله کې نه ګڼل کېده. دا تحديد نه يوازې په آسيائي ادبياتو کې موجود وو بلکه په اروپائي ادبياتو کې ئې هم اعتبار درلودی مثلاً هغه وخت چې د کلاسيک دوره په اروپا کې شروع وه هر ليکوال مجبور وو چې د يوناني او رومي ادبياتو د اصولو پيروي وکړي او د خپل اثر په ليکلو کې د هماغې وخت او عمل د يو والي مراعات وکړي. دا لاخه چې په جزئياتو کې هم بايد د هغو د افکارو او احساساتو تقليد وکړي کوم چې يوناني ليکوالو په خپلو آثارو کې راوړي وه او چا چې به د رومي او يوناني ادبياتو څخه پوهي نه درلوده د هغه اثر ادبي نه ګڼل کېدی. خو دوه نه خبره وه چې اروپائيانو دا قيد د ادب له غاړې څخه پورته کړی، ولې چې د ۱۸ پېړۍ په سر کې چې د رومانتيک دوره شروع شوه نو فرانسوي، الماني او انګليسي ليکوالو د کلاسيکي ادبياتو د اصولو څخه مخ واړاوه او آزادانه ئې په هره موضوع او هر ډول الفاظو او کلماتو سره چې زړه ئې غوښتل ليکنې وکړې او بديع ډول ئې د ادب ساحه ارته کړه.

اما په ختيځو ادبياتو دې وضعيت تر ډېره پورې دوام پيدا کړ حتی تر اوسه لا هم ځای ځای د ادب له تعريفو څخه د ادب د دائرې تنګي او محدوديت ښه برېښي. مثلاً هغه نظم او نثر چې د ادبي علومو پر اصولو برابروي هغو ته ادبيات ويل کېږي، د عربو محققو پوهانو په ادب دا سې تعريف کاوه چې [الادب هو حفظ اشعار العرب و اخبارها ولاخذ من كل علم بطرف] ادب د عربو د اشعارو او اخبارو يادول او د هر علمه څخه د ضرورت په اندازه برخه اخيستل دي چې مقصد ئې لساني او شرعي علوم وه يا ادبيات د ادباؤ د خيالي توليداتو مجموعي ته وائي، عربو به ويل چې پو عامي تعبير او عامي موضوع د فصيح شعر د بارخه ته ښائي، عربي شعر بايد د رو ندوي او د مشرانو په ذکر او مقايسه ولګوي ته د بازار ويناو.

مسعود او ابن نديم چې د عامي ادب څېړنې کېسې لکه [الف-ليلى] وليدلى نو ئې په سپکه سترګه ورته کتل او هغه ئې په ادبياتو کې داخل نه بلل ابو هلال عسکري چې د نامتو بلغاؤ څخه ګڼل کېږي ليکي؛ چې که يوه اوږده معنی په کښېتو الفاظو سره وليکل شي هغه

معنی خیله ښکاره دلاسه باسی او که بالعکس یوه کښته معنی په ارزو الفاظو سره بیان کړه شی دا کلام فصیح او بلیغ بلل کېږی

که ودغو تعریفاتو او اقوالو ته څیر شو او ادب ته دښوانو په سترګه وګورو دا به ښکاره شی چی ښوا نو هغه ایکو نه او و یناوی

ادبی بللی چی هغه به دخلکو دیوی مخصوصی طبقی دافکار و محصول وه، یعنی کهچا تصنعی او د ادبی علومو مطابق وینا کړی وای بائې دخپل وخت پرادبی مقتضی برابرخه ایکلی وای هغه ته ادب ویل کېدی او داوینا بالیك به د ادبیاتو په جمله کی شمېرل

کېدی او که لهدې څخه ماسیوا وای نو دغه وینا یالیك غیرادبی او معمولی بلل کېدی چی لهدې لامله نو د ادب او ادبیاتو ساحه محدوده وه .

مګر په اوسنی عصر کی لکه نورو ټول علوم چی پرمخ تللی دی مختلف

شقونه او بیلی برخی ئې موندلی دی ادب هم دغسی نظر ر موندلی او په اوی رنګ رنګېدلی دی د ښوانی محدودی دائرې څخه وتلی او د پراخت سوی دی او نسبت و ښوانه خورا ارت مفهوم اری لکه دڅیړنو پوهانو تعریفونه چی دا خبره ښه ثابتوی مثلاً یو عالم وائی

[ ادب دانسان د ژوندانه تفسیردی ] بل وائی [ هغه ابدی او سرمدی قوه او شیان چی قدرت انسان ته ورکړیدی د هغو د ښکاره کولو او اظهار ته ۴ ادب وائی ] لهدی څخه معلومېږی چی د ادب احاطه اوس ډېره پراخه ده، څرنګه اوښا غلې ئې دومره

ډېری سوی دی چی حتی څیړنی پوهان اکثره علوم په ادب کی داخل ګڼی مثلاً یو غربی مفکر وائی چی، ادب فقط دوه ښاخه اری که له عقله سره اړه واری [ ساینس ] ئې بولی او که له خیاله سره اړه واری نو [ شعر ] بلل کېږی چی پهدې دول نو مثبت علوم او ساینس

هم د ادب له دائرې څخه نسی وتلای. لنډې دا چی ددې تعریفو څخه داښکاره ده چی د ادب مفهوم او د هغه د تعبیر ساحه ډېره ارته ده او د

یو شمېری یا یو ټولی داحساساتو او افکارو د تحریر او تقریر مجموعې ته ادب ویل کېږی

چی په دغسی عام اعتبار نو دانسان ټول فکری او حسی محصولات دادبیاتو په چوکاټ کی راځی

## ادب او ژبه

مګر دلته یوه خبره شته او هغه

داده چی د ادبیاتو او ژبی ترمنځ باید تر ټولو پېر موجودی ته هغه تفریط چی ښوا یې ادب کی کاوه او یوازی ئې تصنعی آثار

ادبیات بلل او نه دونه افراط چی ټوله وینا وی یا لیکونه په هره اندازه او هره موضوع کی چی وی آدب و بلل سی. که څه هم

داښکاره ده چی د ادب ساحه تر ښوا ارته ده د مخه به ملی ادب د ادب د دائرې څخه وتلی ګڼل کېدی اوس په ادب کی

داخل ګڼل کېږی لهدې جهته چی د یوه ادبی اثر امتیازی وصف دادی چی باید په ښه اوسېدونکو کی ذوق او هیجان

تولید کړی نو دعوامو ادبیات چی د جامعې او په برخه پله هیجان

راوالی ښکلاکېدای سي چې له
ادبیاتو ښکلاوې وتلي وګڼو؟
په پښتو کې حقه لنډۍ او ناري
چې پښتانه یې په غرو او دښتو

کې وایی د تولنې د زړه ښکلا
راوتلی او د تولنې په زړه کې
ځای نیسي ، حقه ادبي ټوټې
چې دعوامو ادبي ذوق یې صانع

وی دخواصو د دماغ تر مصنو-
عاتو ډېر مؤثري دهیجان په
تولید کې ډېرې اغېزه لري او د
انتقاد قوي روح هم پکښې

نغښتی دی . علاوه پر دغه په نظم
او نثر کې دموضوع او معنی له
حیثه تر بخوا ډېر وسعت پیدا
سو بلکې دغسي هم انتقاد چې په

نوي دنیا کې د ادب محور ګڼ
ګڼل کېږي بخوا یې په ادب
کې لار نه درلوده . نو چې دا مونږ
چې ادبیاتو تر بخوا ارتوالی

مونداني دی د تعبیر او شمول
ساحه یې پراخه سوېده دا هم
باید ومنو چې د ادبي او معمولي
ژبې فرق موجود دی او هره

خبره ادبي خبره نه ده او نه ادبي
خبره داسې ده لکه معمولي .

ښاغلی صدورنګار په [ سخن سنجی ] کې لیکي [ که بولیکونکی
داسې کلمات او الفاظ ایجاد کړي چې بخپله دده دیاره دده د
نفسي احساساتو ښکاره کوونکي وي او په دغو کلماتو او الفاظو
کې دومره قوت او انرژي نه وي چې دده احساسات دلوستونکي په

ذهن کې ور کښېښوی نو دغسې اثر نه ادبي اثر نه شو ویلای مقصد
دا چې ادبي ژبه باحقه کلمات او الفاظ چې په دغه فن کې به
کار یږي باید یادښه او وسیع مفهوم په اثر باداسانۍ او ساده ګۍ
په اثر تر معمولي الفاظو او کلماتو اغیزه ناکه وي او هم دغه د

ادبي او معمولي ژبي فرق دی چې په اوسنۍ ژبه کې د الفاظو او
ترکیبو اغېزه تر دوهم ډول ژبي زیاته وي بل ځای وائي چې : ادبیات
دبشر د احساساتو دنبد لولو ښکلا عبارت دی په هغو نښېو سره
چې الفاظ یې بولو په داسې ډول چې ددغو الفاظو اغیزه تر معمولي

الفاظو ډېره وي .
دی وائي : دقراط ادبیات دشاعر دهیجان قبلوونکی طبیعت معلو-
مول بولي او دا خبره رښتیا هم ده ، مګر هوا که د هیجان او تاثیرات
په عادي او معمولي الفاظ او کلماتو بدل کړه سي ادبیات نه ګڼل

کېږي او نه معمولي الفاظ او تعبیرونه دهغه نماینده ګي کولای
شي ، بلکه ددې کار واك دهغه سړي دی چې دهغه پوهه دالفاظو
او لغاتو پر استعداد احاطه وي .
ددې ټوله بحث نتیجه دا ده هغه آثار چې علاوه پر فکر د خیال

او حسن درلوونکي وي یا یې د الفاظو ، کلماتو او ترکیب
خوند او تاثیر تر نورو معمولي الفاظو او ترکیبو ډېر وي هغو آثارو ته
ادبي آثار ویلای سو . نو که په علمي ، فلسفي او فني آثارو کې هم
علاوه پر فکر خیال او حسن ګډ سي ادبي آثار بلل کېږي .

د ښاغلی «ویران» رالېږنه

# اراکوتی
## (ارغنداو)

د آریانا ارت مملکت په اساسي ویش اوو مړی سر کی پر [۷] برخو ویشل سوی او پنځمه برخه ئې [دراانجیانا] نومېده، چې په راوروسته عربی ویش او د اسلامي دوري په اصطلاح ئې نوم بدل

سوی او د افغانستان یا له هرات څخه ترغزنی او کابل پوری په خراسان مشهور سوی دی په هر صورت [دراانجیانا] د لوئی آریانا د پنځمی برخی نوم دی چی کندهار، گرشك، چخنسور، د سیستان

یوه برخه، فراه، تر کلات، مقر، غزنی او هزاره جات پوری ټوله پکښی شامل دی او د کندهار د سیمی نوم [اراکوزیا] یا [اراکوسیا] و لکه د دراانجیانا نورو نورو علاقو چی هم ځانته خپل

نومونه درلوده.

د [اراکوسیا] یعنی د کندهار داوسنی ولایت په رودخانو او سیندونو کی یو رودخانه ارمشهور سیند دغه [اراکوتی] یعنی اوسنی ارغنداو دی

چی گواکی پخپله دا ولایت هم د آریانائی او تاریخی اسنادو په رجه وبل کېدلای سی چی د دغه رود په نامه مشهور سوی او صرف [اراکوتی] په

[اراکوسی] سره اوښتی دی.

دی زود د نامه په باب کی لکه یونانی مورخینو چی هم زیلو دی ارغنداو یا ارغنداب یعنی خروښنده او به او اراکوتی چی د ارغنداو پخوانی او تاریخی نوم دی په دې باب کی زموږ د هیواد معاصر تاریخ لیکونکی داسی حدس کړی دی چی اوسنی

[الکوزی] چی د ارغنداو د رطنی وگړو نوم دی او د پر دغه قام پکښی امتیازی هم د اراکوتی د کلمی ریښه پکښی ښکاریږی که څه هم د الکوزی د لفظی تجزیې له مخی [زی] د اولاد په معنی دی

خو بیا هم [اراکو] چی د [اراکوتی] د کلمی اومړی جزدی او د [الکو] چی د [الکوزی] د کلمی اومړی برخه ده مناسبت او شباهت سره اری، دا چی ارغنداو څرنگه د اراکوتی اریانی

نامه پر ځای منځ ته راغلی دی داسی ویل سوی دی [سترابو] مورخ اراکوتی چی دغه د ارغنداو د کلمی یو شکل دی د خلکو څخه اروېدلی دی پسا هغه مورخ پخپل تلفظ کی د اراکوتی څخه ارغنداو

جوړ کړی دی که څه هم په اراکوسیا کی ډېر قومونه او زیت نکمونه پراته وه منکر تو او نه اراکوتی وبل کېده، او بطلیموس یونانی مؤرخ د

اراکوزی یعنی کندهار د ولایت د تو او قبیلو نومونه علیحده، علیحده هم ذکر کړی او تاکلی

دي چې دلته بیان به اوږد نه شي .
داهم باید وویل سي چې د عربو د رانګ څخه وروسته دا روډ او دا سیمه د [الرخج] په نامه هم یاده سوه .

اوس په ځینو ښارونو او مدنیتونو ذکر کړو چې دارغنداو پر غاړه یا شاوخوا ئې پر سوی او ځینو مؤرخینو ئي نوم اخیستي دي .

اراکونس :- دا ښار دارغنداو د روډ پر غاړه پروت او د دغه ځای مرکز بلل کېدی دا ښار [استرابو] مؤرخ د کلات د شمال خوا ته د کابل پر خوا پر ۲۲۵ میله پروت بولي په دغه حدود کې د بوه زاده ښار خرابي د [ضحاك] د ښار په نامه داود ارغنداو پر غاړه د کلات شمالي خوا ته پرتې دي وبل کېدای سي چې دغه به وي .

ازولا یا [وزرلا] :- دا ښار که څه هم داود هلمند د ښارو څخه یو مشهوره ښار دی . بطلمیوس یوناني مؤرخ دا ښار پخپله د کندهار [اراکوزی] دولایت مرکز بللی دی .

فوکلیس :- دا اراکوزی د مشهورو ښارو څخه و چې بطلمیوس ئي یادونه کړېده موقعیت ئي د غزني او کندهار تر منځ تقریباً د اوسني کلات سیمه ده دا ښار مؤرخین د یوناني پاچهانو له بناؤ څخه ګڼي او اضافه کوي چې د اراکوزي تر ټولو ښارو محکم او ټینګ ښار و .

تکین آباد :- بیهقي د دې ښار یادونه کړېده دا ښار د کندهار د ښار پر ځای اباد بلل سوی دی اوس ئي هیڅ نښانه نسته .

پنجوائي :- دا هم د ارغنداو د غاړې یو تاریخي ناحیه ده چې اوس هم اباده او د اهمیت کې څخه خالي نه ده د کندهار یوه مشهوره اولویه سیمه ده تاریخي حیثیت ئي د یادولو وړ دی .

پر ته لدې اراکوزیا نورودان ځایونه او ښارونه هم درلودل چې نومونه ئي یا نه دي راوړل سوي یا بلکل چا ته نه دي معلوم مثلاً ین ورخ موزنه د کوهك، خالیشك کندوالي، د صالحان د کلي دغره لمنې په مخه راځي او هم د دهراسی منډیګك او اشوغې په باب کې ځینې نظریات سته چې مدنیتونه په یکښې نېږ سوي وي چې دا ټوله د ارغنداو د روډ پر غاړه یا ودې روډ ته نژدې موقعیت اري .

[ د ښاغلي واسعي د یوې مقالې لمنیز ]
د لږ تصرف سره

ښاغلی عبدالرحیم «هاتف»

# ډله که ټولنه؟

د ترادف موضوع په ادب کې یوه کړکیچنه مسأله ده چې پوهان ئې پر دوو ډلو ویشلي دي . ځوك مرادف الفاظ هم معنی بولي او ځوك ئې بیا په معنی کې لږ توپیر ته قائل دي .

تر ډېرې اندازې علمي اصطلا-حات د کلماتو پر رواجي مفهوم بنا کېږي، که ډله او ټولنه عادتاً یو د بل پر ځای کښېږدو هرومرو ځوك او ځوك به ذي ابهام کې راځي چې دا دوې کلمې که پر یوه معنی دلالت و نه لري مرادفې نو ضرور دي .

خو د توضیح د پاره باید ووایو چې د ډلې او ټولنې ترمنځ څه توپیر سته چې جمعیت ئې د اجتماع سره لري، په بل عبارت ډله مطلق یو ځای کېده دی او ټولنه تشکیل او انسجام هم ایجابوي . که حیواني عالم ته د متر کو تر کنج و کورو وینو



چې ذحیواناتو ډېر انواع طبیعتاً دا غریزه لري چې سره راغونډ سي، و بېلو نه حاجت نه لري چې حیواني غرائز د مفوذ بخوانیو نسلو د تجربو محصول دي او په دغه راغونډېدو کې د افرادو شعوري دخل لږ دی؛ که موږ دغه ذحیواني طرز راغونډېده و بولو نو د لفظ او اصطلاح څخه به لیرې نه یو تللي .

ډله ځانته مختصات لري، چې تر ټولو مهمه خاصه ئې ځان ځانی ده او نور ممیزات ئې هم د دغه انشعابات کښلای سو . مثلاً دا چې د ډلې افراد تر شخصي کټې پورته په ډله کې نور هیڅ حکمت نه وینې یا دا چې یو فرد ئې د ځان او بل ملګري په واقعي حیثیت نه ری خبر او یو فرد د بل په درد د مخه د پاره نه خوځېږي، او د ډلې د تشکیل غایه او بخیله د ډلې اهمیت نه پېژني هم د ځان ځانی د مبدأ پناخونه دي .

تر ډېره حده ډلــه د خېلو د غو ممیزاتو سره په عاقلو حیواناتو کې موندل کېږي، مثلاً که د پسو له ډلې څخه یو د لېوه په برخه سي نور ئې په مننه تلافي کوي او هر فرد د ها نورو یا د خو د ل سوي هیڅ غم نه خوري . سعدي د دغې حادثې ښه تعبیر کاوه چې وېل ئې :-

گوسفندی بردایند گرگ مزور همه روز
گوسفندان دیگر خیره در او مینگرد

لېوان د جنسي ميلان پر وخت سره راغونډېږي باهغه وخت چې بوغټ بوده په ګډه سره رامروري، داوخت ئې هم مطلب

دخپلو خېټو د ګولوي او دېل په انس کې چرت نه وهي، مرغان هم عموماً د لېږد پسر مهال داله نږي.

په دغو ممېزانو باود غلانه نزدې به مترقي انساني اجتماعاتو کې هم پوراز تولنه ستنه چې موقتي تولنه ئې بولي خو په هغه کې

لاهم عالي انسانان داجتماع په غاني حکمت بوه وي. اما اساسي انساني تولنه داسې نه ده، که څه هم د انساني

اجتماع اصلي تو منه دغه داله ده خو د انسان ارتقائي سير فضيلت او پوهنې د دلي زيږي څوکې ورسولي دي او

پرېښندو کې يې په سطحه ئې راسر پېره کړېده، د تولنې فرد

پر خپلو تولو شخصي مطالبو سر پېره د نورو افرادو غم خوري، د مصلحت فکر ئې کوي، حقوق ئې پېژني، تجاوز

نه پر کوي، حيثيت ئې ور معلوم وي، احترام ئې کوي او داته بوازې د دې د پاره چې دده ګټه پکښې ده بلکه د خپلو انه پو الا تو ګټه هم له نظره نه اچوي، پر دې

سر پېره په خپله اجتماع هم پېژني د ښېګړي د ودانۍ تګ او سلامتي په لار کې ئې پوره اهتمام کوي، په تقدس ورته

قائل وي او بيا هم داتوله نه بوازې د شخصي ګټې په منحصر احترام بلکه تر هغه پوزنه د تولنې د پاره بالذات هم د ښې

عقيدې پر اساس کوي ځکه چې پوه انسانان د اجتماع د تشکيل په غايه او د مختلفو اصنافو په اهميت پوهېږي تر دې حده چې

د پر ځله افـراد خپل مفاد او ځانونه په انده رضا د اجتماع

د صيانت په لار کې قربانوي نو په نتيجه کې د داشان مرتقي جامعې افراد روحاً او جسماً آرام دي.

اوس نو خبر داده چې آيا توله انسانان داسي اجتماعات لري؟ آيا په پوه پلا ودغې عالي سطحې ته رسېدلي دي؟ البته جواب

ئې منفي دي ځکه ده پر وانسانانو جماعتونه د حيواني دلې او انساني تولنو ترمنځ واقع دي او هغه انسانان چې مترقي

تولنو ته رسېدلي دي هم په پوره وار نه ده ور ورسبه سوي. نو هغه څوك چې د ښې اجتماع هغه جاري ساتي ايري نه ده

چې تدريجاً ور ورسېږي هيلي ارو چې کشکي موږ ته هم د علم او ښه تخنيك له لاري په انساني عالي اجتماع

کې څه ونسي ژوند را ورسېږي.

# کره کتنه

ښاغلی «پانیپتو»

## بیاهم
# دمذکر جمع

ما به پردغې موضوع باندې دد پسې بلا له باره قلم نه وای را اخیستی، خو څرنګه چې دښاغلي ښځاني په هغه لیکنه کې چې زما په جواب کې ئې کښلې وه، ځینې د یادونې وړ ټکې سته، ځکه مې نو دغه څو لاندې کرښې پرځای په ونه ګڼلې .
دښاغلي ښځاني [دپانیپتو په ځواب کې] لیکنه ډېره له حوصلې ډکه وه یعنې زما کره کتنه ئې په ورېن تندې منلې اود هغې جواب ئې په سړه سینه کښلی ؤ، چې زه ئې پخپله دغه رویه ستایم اودده پو ښه صفت ئې بولم . اوس به نو دده وهغو خبرو ته راسم چې زما پر لیکنه ئې دراوډلي :-

۱- دی لیکی :[ داچې زما مقاله په کابل مجله کې خپره سوېده اوتا ور باندې په کندهار مجله کې انتقاد کړیدی ] .
داخو سمه خبره ده اوما هم باید خپله لیکنه و کابل مجلې ته دراېږلې وای، مګر ځینې علتونه موجود وه، چې نه وی شه پروا خونې نه درلوده .
۲- بل ځای داسې کښل سوېدې :[ ماځینې داسې نکات وایدل چې هغه ستاسو په نفسیاتي کیفیاتو پوری اړه لري . د هغه [هغو] څه جواب [اه] ما سره نشته ] .
زه خو پخپله تراوسه لا هم له هغو نفسیاتي کیفیاتو څخه، چې ښاغلي ښځاني اشاره ورته کړېده بې احساسه یم . نو موږ ی داهم لیکي چې له ما سره ئې جواب نسته، مګر ددغو نفسیاتي کیفیاتو ئې

یادونه او څرګندونه چې ئې کړې وای هم ئې د جواب او توضیح په نوګه کفایت کاوه .
۳- دغه ورو ستنۍ نقطې چې او موږ دی ئې په لیکنه یادونه کړېده یوازې زموږ د افادې او استفادې پر کمزورتیا باندې دلالت کوي، مثلاً :- ما کله لیکلې وه چې عربي کلمات باید نه وای استعمال سوي؟ عربي خو زموږ میرېزه ژبه ده کله ځنې خلاصېدای سو؟ ماخو کښلې وه چې د مقالې عنوان [دمذکر جمع] وما نه دغه را افاده کړه چې : بحث دعربي کلمې [مذکر] پر جمع باندې دی . مګر هغه زما له توقع څخه برخلاف په مقاله کې دپښتو دمذکر و، مفردو او موا وصفاتو پر جمعو باندې بحث سوی ؤ . ما دغه هم کښلې وه چې دعربي [مذکر] کلمې جمع عجیبه او په زړه

پوري موضوع ده؛ ولې هغه څوك چې نه پوهيږي پر ټپروزي، چې مذاکر ئې دادي:-

مفرد: مذکر، نر      جمع: مذاکر، نرکور

که څوك ناخبره وي نو سهولة وايي چې د [مذکر] جمع [مذاکر] او د [نرکور] هغې [نرکور] ده. مګر په واقعيت کې پښتو سرچپه ده، يعني د مذکر جمع نرکور او د نر جمع ئې مذاکير کيږي. داچې ولې داسې راځي؟ بحث

څيړنه او جواب ئې بوه په زړه پوري موضوع جوړوي.

٤- «د جمع پر ځاى د جمعې ليکل...» په دې ځاى کې داسې ويل کيداى شي چې «د مذکر جمع» په عنوان کې د جمع شکل ئې سم دى، ولې چې د نوموړي ترکيب مبتداء «مذکر» مفرد دى، نو ئې خبر هم بايد د مطابقت په صورت کې ورسره مفرد وي. مګر کله مبتداء مفرد نه وي لکه «د مذکرو نومو...» چې جمع ده نو ئې خبر هم جمع راځي نه مفرد. مثلاً موږ داسې نسو ويلاى «د مذکرو مفردو نومو جمع» بلکه داځکه چې په دې صورت کې به نو زموږ واده مذکرو نومونه بوه جمع ولري او دا به

هغه صورت کې امکان لري چې واقعاً هم دغسې پيښه وي، لکه دغا ييو د ضميرو په برخه کې چې دغسې کيداى شي مثلاً ويلاى سو چې: «دغايبو مفردو شخصي ضمايرو جمع چې ضميرونه ئې دوه

دي او جمع ئې يوه ده «دي، دا، دوي». ځکه او په يوه بوړنئي ترکيب کې «د مذکرو مفردو

نومو او صفتو» خبر د مطابقت په صورت کې جمعې راتلاى سي نه [جمع] يعني «د مذکرو مفردو نومو او صفتو جمعې».

٥- په جواب کې مې ليکلي وي دي چې: «ستاسو په دې ترکيب زه د [مفرد] د قيد سره هم موافقت نه لرم... بلکه ددې لامله چې زما د خپلې ليکنې په ۱۲ ماده کې د جنس نومونه په ۱۳ ماده کې مصدرونه او په ۱٤ ماده کې ځينې هغه کلمات چې په مفرده بڼه کې د جمع «جمعي» معنا ورکوي او په ۱٦ ماده کې هغه صفتونه چې د مفرد او جمع «جمعي» دباره يوراز استعماليږي، ذکر شوي دي».

اساساً او په ده او په سره څخه راخړي دي، ولې واز دواړه ډالازمه وه چې او مونه کته کوري سوي واى او بيانئي پر جمعو باندې زغيږدلى واى، يعني بيائې نو په هر بيل بيل مبحث کې مفرد يا جمع او يا دواړه سورتونه بيان سوي واى. مګر داچې نوموړي ښاغلي زما افراد له قيدة سره د [مفردو مذکرو نومو او صفاتو جمعې] په ترکيب کې د خپلې ليکنې د ۱۲ سمې، ۱۳ سمې، ۱٤ سمې او ۱٦ سمې مادې له بلوه موافقت نه لري، زه ئې موافقت داسې حساسوم:-

په ۱۲ سمه ماده کې چې ئې د جنس «۱» نومونه راوړي دي، دا فراد پر قيد باندې څه اغيزه نه لري ولې چې په «الف» وپشنه کې ئې عين شکل هم مفرد دى او هم جمع، نو په دې صورت کې ويلاى سو

«۱» د جنس کلمه د مذکر جنس او مؤنث جنس له پاره ده نو په بوړنئي صورت کې ئې استعمال پر ځاى نه ايسي.

چې د جمعې مورفيم ئې صفر دی، او دغه صفر مورفيم او دا معناته اری چې بادی مفرد نه وی او بادی جمع.

مثالونه ئې سره له استعماله پهلاندی ډول دی:
انار، لوکاټ، بادرنګ، غنم، زډن، کورټ بادام.

| مفرد | جمع |
|---|---|
| دغه انار دی، [دی،] | دغه انار دی. [دی] |
| دغه لوکاټ دی، | دغه لوکاټ دی. |
| دغه بادرنګ دی، | دغه بادرنګ دی. |
| دغه بادام دی، | دغه بادام دی. |

د [ب] ویشنې په باره کې باید له دمخنوه وینا سره هم په تومو کې کتنه کوو په چ‌ودی سی مثلاً یوه ئې لسه هغه ښځه: حساب‌پدونکی اونه حسابپدونکی تومونه.

که بیاهم له یوي خوا ښځه دغسي ویشنه نوي او نااشنا نو سه ایسی اوله بلی خوا ښځه دا چې موضوع پهمتداول ډول سره بیان‌سو بده، نو بیاهم [دمذکر جمع] عنوان غوره غواړی:

دغه د [مذکر جمع] اضافی ترکیب دا ښیي چې [مذکر مفرد او [جمع] ئې بیانیږی، یعنې دمذکر په کلمه کې بخپله د افراد قید پروت دی، چې جمع ئې یوښکاره دلیل دی، او بل دعربی مذکر کلمې اشتباه هم له دغه ځایه وه.

که چیری موږ وغواړو چې له پورتنی عنوانه ښځه د افراد قید پرمخ و باسو، نو په داسی یو مخیزه بدلون پهکښې راولو چې ترکیب به ئې داسی دی: [مذکری جمعی] او که ئې واضح وکـازو نو [دنومواوصفاتومذکری جمعی] کیږی. تر دغه عنوان لاندی تو بیا مفردی کلمې کورټ نهسی بیانېدلای «۱» یعنې داسی باید پښه نسی چې په یوه ماده کې دی موضوع لهعنوانه سره صدمه وی مګر په نورو مادو کې نه.

ب: په ۱۳ مه ماده کې مصدرونه راوړل سوی دی چې وارهجمع دی. مګر اومری په پښه‌خو داده چې دغه مصدرونه خو فعلی نومونه دی او د شیانو له نومو سره نسی رانلای، یعنې باید په دغهسلسله کې بیان‌سوی نهوای.

دوهمه پښه ئې بیادادهٔ چې دغه مصدرونه که نش په دي لحاظ راوړل سوی وی چې نومونه دی، نو داسی فعلی نومونه خو نورهم وه، او هغه ولی نهدی راوړل سوی؟ لکه:-

۱- وهنګ، خوړنګ، کښنګ، چیښنګ ...
۲- چیښاک، پوښاک، خوراک، څکاک ...
۳- کړاو، چیاو، چلاو، لګاو ...
۴- مرینت، پاینت، لګښت، ارزښت ...
۵- سمون، بدلون، کډون، لګون ...

ج: د ۱٤ مې مادې کلمات هم د افرادو له قیده ښځه نسی آزا بدلای: که ښځههم دجمعې لپاره په دغه یوه معین شکل راځی، په دغهډول سره بیا ویل کېدلای سی چې د جمعې مورفیم صفر دی. ددغی مادې د کلماتو مفرد او جمع حالات له استعماله ښځه ښه ترا څرګندېږی، لکه:-

«۱» لمونځ . ماو کړ کېدي

د پر، گټ، زبات.

| مفرد | جمع |
| --- | --- |
| ۱- یو ختکی لاهم پرموز د پر دیء. | ۱- څلور ختکیان خو بیا پرموز بیخی د پر دی |
| ۲- ددوی باغ گټ دیء. | ۲- ددوی باغونه گټ دی. |
| ۳- دغه شی قیمت زبات دیء. | ۳- دغو شیانو قیمتونه زبات دی. |

د: د ۱٦ مې مادې صفتونه هم د ۱٤ مې مادې غوندی دی. بیله دې چې زه ئې توضیح کم ښاغلی بختانی پخپله پر مفردو او جمعو باندی وېشلی دی. یعنی د افراد قید ئې پخپله وار دوار، لاورته ایښوء دیء.

٦- بیا داسې بیې کښل سویدی: [... په دې لحاظ بانه شو (سو) ده مذکرو نومو او صفاتو جمعی کله چې پخپله د متن نه معلومیږی چې بحث د نومو اوصفاتو دیء، نو د مفونذ کر نه فرضیږی.] له دغه عبارته څخه دا راوزی:-

هر هغه څه چې له متنه څخه نه فهمول کېږی ذکر ئې لازمی دیء او که فهمول کېدل سو ئې ذکر بېځایه دیء. دغه معنادا چې [د مذکر جمع] عنوان له متنه څخه نه معلومیږی (رشتیا هم) او که څنی معلومیږی نو ئې ذکر نه فرضیږی.. حقیقت داسی دیء چې عنوان د موضوع محور وی.

۷- بل ځای کښل سویدی چې [... کمی برخی نه چې نا اشاره کړی ده هلته افظی کټه گوری به

کلماتو کی د «خج» د ستهوالی او نستهوالی په «پر» اساس جوړی سوی دی» لطفاً ئې بیا وگوری.]

د بلوار کتنی ئې ځینی داسی خبری راپورته کړې چې لیکنه به ئې ځانی بېځایه نه وی:-

الف: د خج پر اساس باندی په کټه گور بر کی د نه وېشنی کېږی SUBDIVISIRNS او مستقلی کټه گوری هغه مهال پرجوړېدای سی چې د موضوع محور خج وی یعنی چې له خجه څخه بحث کېږی.

ب: چېری چې ما اشاره ورته کړېده هوری د خج پر اساس باندی کټه گوری نه ده جوړه سوې بلکه داسی ورته کښل سویدی: [ چې په نوم او صفت کی خج نه وی نو جمع ئې دوه شکله لری..] رشتیا هم د کټه گوریو په جوړونه کی خورا ډېری کمزوری اوری هم سته چې تکی په تکی ئې یادونه کړانه ده.

ج: په «ب» وېشنه [illegible] کښل سویدی چې خج نسته مگر پېښه بر[illegible] داسی ده چې د دغی وېشنی خج د «الف» [illegible] وېشنی ترهغې هم قوی او هم بر ځای دیء چې ستهوالی خو ئې هیڅ نسته.

۸- مثلاً اونه که هر څونی د پر وی، وی دی، مگر د د پرورا ډونه ئې ضرورنه ده او کفایت کوی چې وویل سی: [مثت نمونهٔ خروار است.]

۹- زما له مرې لیکنی څخه چې پخپله د خلگو په مغزو له ورننوزی، ښاغلی بختانی بیا بل راز

پوهېدلی او داسې ئې کښلي دی: [ د هغو نومو په باره کې چې مفردئې د مغیره عواملو په اثر تغیر کوي او د تغیر سره

مفرد او اصلي جمع شکل ئې یو راز کېږي هم نا سود اشتباه سره مخامخ سوي یاست او اېز په تفصیل زغېدلی یاست، زه به ئې

په لنډ صورت درته عرض کړم: ما بخپله لیکنه کې په دغسو موارد و کې د جمع «جمعي» شکل لیکلی نه بخپله جمع

لطفاً په دې برخه کې بیا غور وکړئ.]

د [جمع شکل] او [بخپله جمع] معنا څه ده؟

ده ته مې کیبو نه هغسې اشتباه پېښېږي، کمه چې زه په اوږدیه کړه کښته کې په تفصیل سره برزغېدلی یم. یعني هوږي هم

زه پر یوه بې سره او بې ښکره عبارت او موضوع باندې زغېدلی الفاظ مې وراليش او اصلاح کړي، معنا مې ئې ور سمه کړي

او له نوروازخو څخه مې توضیح کړې دی. نو که چیرې زه له اشتباه سره مخامخ سوی یم نو په کابل مجله کې هم [ دمذکر

جمع «٦٠» وټ] غلطېږي، ولې چې ما د هغه برخلافه څه نه دي بر کښلي، بېله توضیح څخه لکه: [د جمع شکل] او [بخپله

جمع] چې داسې معناوې ور کوي:

د «پسه» کلمې د جمعي تعبيري شکل «پسونه» کېږي او

«بخپله جمع» ئې هغه ده چې بوڅو پسونه واقعاً بوځای سره ولاړ وي.

توضیح: برخلافه د ښاغلي بختاني مقصد دغسې نه دی «لکه بورنه چې ئې دار کیبو تجزیه وسوه، بلکه نوموړی «د جمع شکل» له ترکیبه څخه «د داسې

مفرد منحرف حالت» مراد وي چې څېښې جمعي هم دغسې راځي لکه: خپاره، ساره، کاږه... چې هم مفرد استعمالېږي او هم

جمع. یا لکه: نامه، وراره زنګانه... چې بخپله منحرفې

مفردې کلمې دي مگر کړوده ئې له څېښو جمعو کلمو سره

ورته دي او د «بخپله جمع» له ترکیبه څخه ئې مراد، د نومو

جمع صورت دی، لکه: اخښیان اړونه، دوزخیان...

دعوې بوڅو نوري کړنې چې کونسدې مطلب ئې افاده کړي وي.

# ښکلا

ښکلا دومره پاشکوه او مقدسه ده چې هر ځای به وچه دراشي، که ئې څه هم هر څوني په پېر بو، پېر بو کې داودلي وحشي ملتونه په انهدام کې کوښښ وکړي، بیائې هم ښې بر خپل ځای باندې پاته وي. «اناتول فرانس»

ښکلا له زونډ څخه زیږېدلې ده. «روسکن»

ښکلا په نړۍ کې هیڅ زباتوب نه دی موندلی. «امرسون»

هر ځای چې ښکلا ته عشق مه. «هیت»

ښکلا د ښکلا جذبونکې ده. «هانت»

ښاغلی عبدالحی «حبیبی»

# د زړه سره

راشه زړګیه ماته وایه د پښتو خبرې
د پښتنو د تېر تاریخ او د ژوندون ویښا
د اوی لودي او د غلجي، سوري، ګډون ویښا
د لوی پښتون د عظمت بیا د بیانون ویښا

راشه چې کښېنو سره

د چا په یاد داسې زړګیه! تا پرېشان وینم
په څه کړاو دې هسې شان ملالان وینم
دا ستا له منځه د سرو وینو رود روان وینم!

څه دې درد پېښه
زړګیه هېښه

راته ووایه اوس څه له درده سوزه ویښا
زه ژړا ته خپور کړم له درده د خپل ګروم داستان
د پښتنو د تېر عظمت، جلال و نوم داستان
د پښتین، ښو، د پېښور او د سدوم داستان

ده ول اټک چېرې ولاړ
خوشحال خټک چېرې ولاړ
بولان کوزک چېرې ولاړ

زما له هېرېږي دما بن او د سوات سیمې
دا باسین، د شال د ژوب او د کوهاټ سیمې
هغه د نوري د برېښتاو او د بانړ سیمې

څنګه به هېره کړم زه
د هغو غرونو ښکلا
دا پېښور، دا تیرا

نوی، نوی کړ زمانی عظیم هیواد د پښتون
اوس نه دی پانه هغه پرم چی مو درلودی پرون
اباسین ژاړی پر دی حال باندی په خنګه ناخون

زموږ پر ذات ژاړی
پر نور عظمت ژاړی
څنګه به ورت ژاړی

سپین پښتانه نه ملته په څنګه سو ځنداور سوځی
د ناپاکانو په ظلمو می خوږ، ورور سوځی
بیا می زړګی د غلیمانو په پیغور سوځی

اسمانه کړی پسه جفا
څوتی ار کومه پر ما
اروی که نه دا وینا

لاس که می پر سی، کرم په تا اسمانه دری وړی
وینم له تانه په ګلو، ګلو جفا، تاوړی
ار څو به اروم د غلیم خبری پری پری

زه به ذلیل نه یم نل
وخت به می راسی یو بل
لاس به می پرسی یو ځل

زه به پښتون نه پر دنیا یو ښکلی کور جوړ کړم
بیا به خپل باغ په ښو ګلو نو ښه مسرور جوړ کړم
دلوی پښتون به لوی نامه به لوی انځور جوړ کړم

د خپل وروره سره
به ممه غانده غړی
د محبت پسه ګړیه

بیا به نو وایمه دنیا نه چی زه سیال یمه
د حق هرمقیال یمه
زه هیڅ پال یمه

ښاغلی عبدالروف «مخلص»



## خامخا به جوړ شي دا د سپینو
## پښتنو وطن

دا هیواد خو نه دی بیګانه او د پردو وطن
څوك تابع کولای شي خپل ځائته د زمرو وطن
یا نه دی وموږ ته له نیکونو له پلرو وطن

دا پاسه‌تانی مځکه او دا پاك د میړنو وطن
خامخا به جوړ شي دا د سپینو پښتنو وطن

دا سپېڅلی قوم به هیڅ وخت اسارت نه مني
خپل پر بازو زور کوي د نورو قوت نه مني
خپل حیثیت ساتي د پردو حیثیت نه مني

ګرد عمر ساتي به تورو نورو به برچو وطن
خامخا به جوړ شي دا د سپینو پښتنو وطن

«۱۸۰ مخ دی وکتل شي»

---

ګرمه به جوړه بوه ښکلې د پښتون دنیا
وی به روښانه د پوهنې د وړانګو په رڼا
سو به زانګو د انسانتوب دغه سپېره پښتونخوا

د پوهې، روغې سیمه
د برم او جوړې سیمه

د پښتنوالی د اورنیا د عظمت زانګو
د لوړ همت د عالي فکر د نهضت زانګو
د انسانتوب، د فضیلت د محبت زانګو

نن د پښتنو په سر که جور دانا تاروانه دي
یا د دغه قوم چې پر هر ځای خراب کوروونه دي
او دي چې ګرلي دي او که غټ درانه بوونه دي

دا زحمت به ژغوري د پردو له پنجو وطن
خامخا به جوړ شي دا د سپینو پښتنو وطن

یا به سره تول شي پښتانه د خپل قبر په ننګ
دانه به ولاړ وي دغه تول په مال او سر په ننګ
تا به مدعي کړي ریز مریز زبروز بر په ننګ

دا خو چیرته نه دي ستا د شومو ګوماڼو وطن
خامخا به جوړ شي دا د سپینو پښتنو وطن

څو وخته به پاتې وي ښکار ته به صیاد کې ځان
مقاله اسارته څه اخیر ته به آزاد کي ځان
یا به سر پر پاڼي پر بوممخ به برباد کي ځان

خلاص به مخلصان کړي د پردیو له احکمو وطن
خامخا به جوړ شي دا د سپینو پښتنو وطن

---

د فکر پلوشې

## دوظیفې پای ته رسول

یوازې عمل چې انسان په ژوند کې وخپل هدف ته رسوي، دوظیفې پای ته رسول دي. «داستانل»

## ښه خوبونه

د نجیب سړي ایدهآل د ښو خوبو دراودل دي. «کنفوسیوس»

## د محیط زوی

انسان د خپل محیط او ټولنې زوی دی چې پکښې روزل سوی دی. «موپاسان»

## ښاغلی «ویران»



# ښاغلی غلام نبي هوتک

ښاغلی غلام نبي «هوتک» چې په کندهار کې په لالاغلام نبي سره شهرت لري د پښتو د پخوانیو لیکوالو او ادباؤ څخه دی نوموړی د عبدالسلام زوی او داچې د تخلص څخه ئې هم ښکاره ده دی په څانګه هوتک او سن ئې اوس [۶۱] کالو ته رسیږي نوموړی

د دربې ناحیې د [کالیزو] په ګوښه کې زیږېدلی او لوی شوی دی.

د شعر او ادب سره دونه علاقه چې په ده کې لیدل کېږي زموږ په عصر کې موبل څوك نه دی لیدلی

ځکه په هر حال او هر وخت کې چې څوك ورسره مخامخ شي ده ته جېبو نه د غزلو او محیني ادبي پارچو څخه ډك وي، مېلو او د خوشالې قواعدو ته هم د شاعرانو د دیوانونه د ځانه سره د یوې بستري

په شکل وړي، په خبرو کې د استدلال دپاره هم د شاعرانو د اشعارو څخه چې ده په یاد کړي دي کار اخلي، برسېره پردې په خپلو ورځنیو چارو کې کومې درخواستونه یا عریضې چې ضرورت

ئې ورته پیدا شوي وي هم په پښتو او نظم لیکي.
ښاغلی غلام نبي لالا خپله سوانح هم په نظم جوړه کړې ده چې یو څه برخه ئې دلته راوړو:

غلام نبي هوتك ادیب یم د پښتو
په ګوښه کې مې دی ګور د کالیزو

نوم د پلار مرحوم مې دی عبدالسلام
خدای دې وبخښي پاروې د خپل کلام

وه شمسي سنه [زر، دره سوه، اتیا]
چې پیدا شوم له مورنه په دنیا

اوس د یو شپېته کلو زه په شمار یم
زېږېدلی هم دلې په کندهار یم

ابتدا تعلیم مې دی له عالمه څخه کړی
په مسجد کې مې دی څه سبق زده کړی

په دا دوو ژبو وینا کولای شم
هم پښتو او هم پارسي لیکلای شم

او په نورو ژبو زه نه پوهېږم
چې پښتون یم په پښتو ژبه ږغېږم

په داخل کې مې لیدلی ښه کابل دی
چې په واړو وطنو کې لکه ګل دی

که غزني دی، که مقر دی که کلات
ګرشك، فراه، شین ډنډ مې دی لیدلی او هرات

بیا در توري غونډۍ هم یم ورغلی
د سخي مزار شریف هم مې دی لیدلی

په خارج کې کراچۍ ته یمه تللی
پر چمن او پر کوټه هم ورغلی

کهٔ دهلي، احمدآباد، کهٔ بمبئي دی
ما لیدلی دغه هر یو په ځواني دی

ما په دې ملکو کې کړې تجارت دی
چې په دې نو کهٔ مې کړی داخدمت دی

فارق نه یمه د بدو څخه بېزار یم
کهٔ پر کور، کهٔ پر بیابان، کهٔ پر بازار یم

نور نو لالاغلام نبي په داسې حال کې چې سر، ږیره او وریځې ئې لا سپینې دي یو تنکره سړی دی، بېله دې چې د ځوانۍ ورتېر بدو ته ملتفت سی د ځوانانو په ډله کې کېدون کوي او په ډېرو خواږو کې تر

دوی کم هم نه وي، هغه داسې په لباس کې بېخي د ځوانانو کالي اغوندي .

لالاغلام نبي په کندهار کې د پښتو دا نهضت ورځې [هغه وخت چې د لتفادبي انجمن او پښتو مجله وه

د پر ډېر یادوی په زیاته بیا دا چې په هغه مجله کې دده څه آثار هم خپرېدل دا خبره خوئې د

یوې ډېر بدو نکې خاطرې په تو که د ځان سره ساتلې ده هغه وخت چې ستر پښتون محمد گل

«مهمند» د لته تنظیمه رئیسو دده یوه توته هم ئې لیدلې او هغه چې د تو سو ودی د لیدو

دیاره ودکان ته ورغلی او نوازش ئې ور کړیو .
د ښاغلي غلام نبي د کاروبار په اړه کې د عطارۍ

او بزازۍ دکان، کله کله په ځینو شر کتو کې مشغولیتونه په زیاته بیا تجارت شامل دی ځکه

چې تجارت ئې د ډېر عمر کړی دی د لته ئې خلک په تاجر سره پېژني .

لالاغلام نبي اوس هم د شعر او شاعرۍ څخه لاس نه دی اخیستی او کله کله ئې اوي، اوي بیتونه یخپله اداده څخه اوروېدل کېږي .

دا لاندې څو ادبي خپره کې د دوی له طبع څخه دي :-

## نه دی لیز

پر دنیا نوع بشر اره غمو نه نه دی لیز
و صابرانې په عقبا کې عوضونه نه دی لیز

لیرې گرزه تل تر تله له آزاره د مظلوم
و ظالم ته په دوزخ کې عذابونه نه دی لیز

چې قلم په لاس کې واخلي د خپل نفس په مدعا
نو پر بل ناحق لیکل او تهمتونه نه دی لیز

رزق په لیز د فقیر نه کړي سپي دې غابې تر سبا
خو په کلي کې د خیر نور کوروته نه دی لیز

تل بېکاره سړی غواړي کار ورځان ته له بل چا
و لایق د کار ته هیڅ کله کارونه نه دی لیز

محبت په ئې هر څوک کړي د صادق سړي مدام
و خائن ته دوکړو بد الفظونه نه دی لیز

د جاهل بدي و ینا ته په خوله بوله ښه کار
کې څه هم و یو هوښیار ته جوابونه نه دی لیز

چې د عشق په اور کباب وي تل دي وائي خال او خط
و عاشق ته د معشوق خپل صفتونه نه دی لیز

په کار نه ارم په هیڅ وخت د یر دی ځ بي داستان
غلام نبي ته په پښتو داسې بیتونه نه دی لیز

ښاغلی «پژواک»

یو ادبي ټوک

# «(سپیلی)»



اې تندې «سپلو» له کومه راځې ؟
له تا د کوم آشنا بوی را رسي
ولې دېر دي او بېگانه په شان

له ما تېر بېږې؟ ودرېږه، آخر
ما ته دې کوم سرور هیڅ پیغام
نه دی راوړی؟
تا هیڅ آه او کاڼه کېرولای

نشې، نو چېرې ځې؟
لږ کړی ودرېږه! زما منتظری
سترگی وياس او تاريكی ته مه
سپاره، یوار مخ را وگرزوه

گوره چې پوازې یم په زړه مې
تنو زه او هلته د آرزو گانو سوی
اور مې کړه
ډېر آرزو لرم چې څه کړې ستا

په سره غېږ کی ورېږدم، پرېږده
چې ستا د لمنې کومه څنډه
ونیسم، غواړم چې ما پر خپلو
تېزو او تندو وزرو واخلې په

غرو او شپلو، درو، ځنگلو او شنو
کښتو او دښتو مې وگرزوې، پر
سیندو، دریابو او اوبو ژورو

سمندو و د پاسه مې تېر کړې
څو هغه ځای ته ورسو چې ته نوره
نشې تلای، هلته به مې او خپل
روح د لاړې مل او لار به راوښئی

هغه وخت به ستړيا ما په ډاډي
خوب ویده کړی چې د خپلو
ښکلو خو پو سره یو ځای سوي
او له او یو طوفان څخه به

مستغني او بې نیازه شم.
راشه، ما ته قصه و کړه چې ته
څه شی پر دې سره او لا لهانده
کړې نې، زما د ځنگله د نورو

شپلو افسانې ډېرې خوښې دي
د بلوط د ونې قصه و کړه چې
تندو، تېزو، الو تو اوږ هغو تاثیر

ونه کړ، د کمزورۍ د ر گی
خبرې را ته ووایه چې ونا ته پر
ملا کېږه او نا هیڅ ور ته ونه-
کاته، نه و بلای شي چې د رود-

خانې له خروښه ناځه و اور په دل
او د دریاچې په سکوت کې څه
پټ و؟
زه غواړم و پوهېږم، هغه وخت

چې لمر لوېږی، د شپې تیاره
خپرېږی آسماني ستوري او
سپوږمۍ ځلیږی، په هغه وخت
کې د لمر آرزو و راختو ته یا

د سپوږمۍ امید و لوېدو ته
کوم یو شدید تر او سخت دی؟
آیا تا غونډې پر دېسی ته چې
غواړی په ډېره چابکۍ لار پای

ته ورسوې. دور ځو روښانه
جاده، یا طوفانی شپو نوره
تاريكه لاره کومه یوه سمه ده؟
دا د خاورو کوچنی، کوچنی

ذرات چې ستا لمنه نې گرزمنه
کړېده، پخپله له تا سره راغلی
که تا دوی له خانه سره *

* راوړی دی .

د بیابان دوحشي ګلونو وږمو
ولی نه پر نیمی لار پرېښوولي
اودوی تاسره راتلل، یا ناو نه-

غوښتل چي درسره وی؟ څله
خپل رازونه له ما پټوي؟ هغه
شپه چي له غره ناړا کوزه شوي
ده ښت د بوټو په منځ کی دی

کوم ورك شوی پلانه ؟ د هغی
بلی ور ځی ..... ابتسام دی څه
خیالونه چي د هغه پـ ـوازی او
ارزومندشپانه د دروی [ نی ]

آواز دی غلا کاوه هغه دی چاته
ارمغـ ـان ور؟ هغه ورځ چي
دی دیا چاوه بیرغ ور باوه او
په یوه لحظه دی خپل ځان د هغو

بېڅوا او زاړه څیری استونی
ته ور ساوه، تا څه غوښته چي څه
و کړي ؟
آیا کومه بلینه غلا کړي وه ؟

رښتیا ته کولای شي چي د شپي
په ظلمت، سکون او تنهائی کی
د شپي بانی د رېږدېـ ـدلو له
حقیقته ما خبر کړي . په زه

غواړم چي یووار دامبهمه او
مجبوراً له پرده چي زما پر سترګو

ني غړولي ده په هوا او پورته
کړي بیا نو زه کولای شم چي

په هغه ښ اوښا پسته باغچه
کی ننوزم، هګر هلته بیائی چي
په نرمی او ملایمت سره د ګر-
ځي هبـ ـا دا چي د هغه ښ

ښکلی غـ ـوټی او شکوفي
ورژیږی !

د آج کل له اردو مجلې څخه | د نباغلی سربن ترجمه

# د نـاول اهمیت او پیدا ئیښت په روسی ادب کي

د ډستائفسکی چي د روسیې په لیکوالو کی د خپلو هیتکرو لیکنو په اثر سره ستر شهرت درلودی په یوه شفاخانه کی چي پلار ني په هغه کی نوکري پیدا شو دا لږ ګټې او ډېر خرچ په اثر سره به ني پلار

غریب هر وخت له مشکلاتو سره مخامخ و او مدام به ني و خپلو زامنو ته ویله زوند ناسی د کوچنی والی بازی مه ګڼئ د دنیا سختی مصیبتو ته پیاله د تعلیم او کسب و کار له لاری څخه په بل شی سره نشی اسانه کېدای د دي لیکوالکی د مور تحمل او حوصلي هم د

ژوند پر مشکلاتو باندی کوم بری نه کړ پیدا او نه ني دده د کوچنی والی و دماغی خلل ته کومه سوونی ورسول، له مجبوریت څخه به ني د کور او غړو هره ورځ د ماسکو په مهدنو کی کار کاوه او دی به ني د نګهبانی له پاره یوازی په کور کی پرېښوودی چنانچه

د تعلیم په وخت کی هم له دغه قید وبند څخه نه و خلاص له خپل میخایل نومی ورور سره ني زښته ډېره مینه درلوده او په مکتب کی

ني غیر له ده څخه له بل چا سره کار نه درلـ ـودی د ابتدائی

ښوونځی تر اکمال وروسته د پیټربرګ د انجینری و کالج ته داخل شو په ۱۸۴۳ کال کی د لیکنی ملازمت ور ملاو شو

ځکه چي ده پـ ـه سانبس او ریاضیاتو کی تعلیم کړی و ×

× ونې د تحریر او دفتري کاره
سره چندانې دلچسپي نه درلوده
خو له مجبوریت څخه ئې دا
پېشه خپل د معاش وسیله

وګرځوله د ناول لیکلو د مشق
په سلسله کې ئې لومړی د غریب
سړي په نامه یو ناول ولیکی
چې په ادبي محافلو کې ئې

خورا مقبولیت پیدا کړی دی
دې مقبولیت ئې حوصله ورزیاته
کړه. خورا ژر ئې دري
نوري افسانې هم بشپړې ولیکلې

او ځان ئې د پتراشفسکي د
کار کوونکو په حلقه کې چې
اغلبه حصه ئې اشتراکیان او
یا داشتراکیت طرفداران وه

داخل کړ په ۱۸۴۹ کال کې
د دوی د اداري و ټولو محلمیانو
غړو ته د اعدام کولو امر صادر
شو مګر د زار د بخښنې په اثر

سره په سائبریا کې په مشقته
بند سره محکوم شول.

د ستهٔ یفسکي پسله څلور کاله
سخت بند څخه په زور سره په

فوج کې داخل کړه شو او
و پیټربرګ ته د تګ اجازه په

۱۸۵۹ عیسوي کال کې ورته
وشوه. وا بیږ ژوندئې له نوي کتو به
څخه بیا تر دې وخته پورې به
او زه سره تېر یدی او حواس ئې

داسې مختل شوي وه چې د
روزي پیدا کولو په چل بېخي
نه پوهېدی بیا چې ئې لږ څه
کار بار سره سم شو خراجي او

فضول خرچي نه ئې لاس ورنه
کړ کله چې له سائبریا څخه د
وطن و خوا ته راستونېدی خورا
د پور پوروړی او دربدره و

هم دغه مجبوریت دی بیا ولیکنې
ته اړ پوست او د همغه پورو
سپکولو ته ئې غیر له کتابو او
یا مقالو له لیکلو څخه بله وسیله

نه کړه پیدا په ۱۸۶۰ عیسوي
کال کې ئې د بېکسي په نامه
سره یو ناول ولیکی او په ۱۸۶۱
ع کال کې د میخاییل نومي

ورور په ملګري سره زمانامه
یو میاشتنی مجله جاري کړه.

په دې رساله کې ئې خپل د قید
حالات په اقساطو سره شایع کړه

او د مزدورانو په طرفداري ئې
هم داشتراکیت له قوانینو سره

نشریات کوله همدغه سبب و
چې دې رسالې ژر محبوبیت
پیدا کړ او د مشترکینو شمېر
ئې ورزرو ته ورسېدی.

مګر په ۱۸۶۳ کال کې د ریاست
په حکم سره بنده شوه.
د ستهٔ یفسکي بیا د یوې بلې
نوې رسالې د رایستلو انتظام

کاوه چې ناڅاپه ئې ورور مړ
شو او د همغه د کور خرځ او د پورو
ادا ینه هم دده پر ذمه شوه خو
سره له دې پرېشانیو ئې په

۱۸۶۴ کال کې د ځینو ملګرو
په ملګري سره د [دور] په نامه
یوه ورځو کې رساله را وایستله
چې له بده مرغه پسله څو شمارو

څخه د سنتي ریاست ور مصادره
کړه او پر ده باندې ئې د بند
حکم وکړ.
مجبوره شو له روسیې څخه د

جرمني ته ونښتېدی په ۱۸۶۵
کال کې د اقتصادي مشکلاتو

له حیثه څخه بېرته وهیواد ته
ستون شو په ۱۸۶۶ کال کې

ئې د [جرم او سزا] په نامه سره
یو اثر ولیکی چې دا اثر به ښو

د پېړۍ وروسته خرڅ شوا و دغه
پورونو وغاړه ني په وونله مګر
د نورو پورونو زیاتو غوښتلو
بیرته داروړا ونګ ته ادپوخت

کله چه په دې وخت کې افسیما
او استقامت ښه کار اخیستی
وای او خمار ني نه کولای هم
په ني پور سپک سوی وای او هم

په اله در بدری او پردیسی ښه
ژغورل شوی وای .

خو په هر حال په یورپ کې ني
د خلور کاله استوګنې په موده

کې دوه اوږده ناولونه پوره
[مجذوب] او بل د [ بوت پرېت ]
په نامه سره ولیکل او په ښو
د پېړو پیسو سره ني وپلورل

مګر سره له دې په ني هر وخت
کېږه وزی او بدن برمنډوو
ماندېنه ني سره له بدو عادتو د
کفایت شعاری په اثر سره وده

نه وهلی کلاوه پسله یورپ له
رانګ او په وطن کې د لس

کاله ژوندون په دوران کې له
یوې خوا ښځه ني ددغې ښځې

د ښه انتظام په اثر سره مضطرب
زړه ابز ښه آرام شو او له بلې

خوا ښځه ني د ۱۸۸۱ کال او ږد
ایکچر شهرت بو په دوه کره
تو څکه ني جنازه په د پر شاندار د
مراسمو سره د روسیې دستور

رجالو په کېدن و خاورو ته
وسپارل شوه .

د دستمه ئفسکی مزاجی کیفیتونه
دده له تصانیفو ښه ښه ترا

څرګند پېدای شی او د هغو د
پوهېدلو دپاره دده د شخصیت
له تولوار خو ښه واقفیت لازم
دی په ورور کوالی کې د معزولو

له صحبت ښه محروم او په
او پوالی کې په هم له ماګرو
ښه کوښه ګرز ېدی ددې ازوا
او ګوښه ګیری وجه ني دا نه وه

چې هغه پدایان اودی غریب و
بلکه د خلکو له صحبت ار ګېدن
ښځه ني پو دولوار خطائی او
کر که در لوده او بل بیا د مهذب

ژوند له رسمو او آدابو ښه
بلکل ناواقف و غیر له خیل

ورور میخایل نومی ښه ني له
بل چا سره سات نه تېر ېدی او

نه ني د زړه پټ راز ور سره
شریک و . مطلب دادی چې دې

شاعر خپل طبیعت دارادې طابع
کړی نه و سره له مقلسی چې په
کله پیسې په لاس ور غلی بېځا په
په ني خرڅولی .

ملازمت چې ني برېښېر دی نو ني
په انشا بردازی پیل وکړ او
خپل او مرنی ناول ني کمزدور
په نامه سره ولیکی چې د ماسکو

په ادبی حلقو کې ني ډېر قدر
وشو ، او له دې اثره ښه خلکو
وغوښتله چې له ده سره دوستانه
تعلقات قایم کړی مګر ګوښه.

ګیره طبیعت ني ددوی ددې
تمایل چندانی استقبال ونه کړ ،
وانی سره له هو مره منزوی تو به
او بې اطمینانی ني په طبیعت

کې خود پسندی هم موجوده وه
او دابز اختلاف برداشت ني هم
نشوای کولای یعنی هرچا او
هر شی ته ني د پسند ګمانی په

ستر ګو سره کتله [ بران سکی ]
چې د غریب نومی ناول داشاعت

په زمانه کې ني د تواله روس
ادبی رهبر و هم ني دده ددې

ادبی ستر اثر مدحه په وار وواره
سره کړ ېده مګر هغو ور او روسته

خوافسانو ئې چندانې مقبولیت نه کړ پیدا او نه ئې د نوموړي ادبي قائد له طرفه څخه کوم تعریف او توصیف وشو او ځکه

د دسته‌نفسکي له ادبي ټولنې او دغه مشره څخه اتهامات شو او په هرځای کې ئې د دوی په شکایت سره خواه وازه کړه

څو هغه‌ؤ چې یو بل هم عصره ناول لیکوونکي [تورګینیف] نومي ئې د غریب سره له ناول سره سم یو بل داسې ناول ولیکی

چې عیناً له هغه سره له هر حیثه مشابه ؤ دي وضعیت د دسته‌نفسکي زړه داسې ورمات کړ چې نه یوازې ئې له [تورګي-نیف] بلکه له ټولو ادبي وګړو سره ئې مراوده وشلوله تردې اندازې پورې ئې بدبیني زیاته شوې وه چې له خلکو سره ئې

بیرمخ علاقه قطع کړه دا یو معمولي کار ؤ چې ده کاوه

مګر د فضول خرڅي له وجهه څخه به تل له مالي مشکلاتو

سره مخامخ ؤ او له هغو کسانو څخه به ئې مرسته غوښتله

چې دده به بد ځنې راتله او شکایتونه به ئې ځنې کواه دې کشماکش د دسته‌نفسکي د طبیعت توازن بلکل ورخراب

کړی ؤ او د بدو عادتو له حیثه څخه د خلکو په نظر کې داسې حقیر او خوار ؤ چې احدمن-الناس به ښه سترګه نه ورته

کتل او ده هم دا احساس کړې وه چې په دغه رویه سره د عزت او اقتدار پیدا کول امکان نلري. دعمر په آخر کې ئې ماندینې

د هر کسانو او وګنانو اداره بخپل لاس کې واخیستله او داسې به ئې کنترول کاوه لکه مور و پلار چې خپل اولاد

کنترول کوي.

د دسته‌نفسکي د خوبو او عاداتو له نمق څخه موږ ته دغه دوې خبرې په لاس راځي . اومړی

داچې احتیاج او مجبوریت دی ولیکنې ته واداره کړ او دروسي

ادب یو ستر شخصیت شو . دوهم داچې بخپل ادب کې ئې د خپل

سرګذشت او اسرار احتیاج تصویر ښه تراڅرګند کړ چې

و نورو ابله ګردو کسانو ته سرمشق شي . وایي چې ددې لیکوونکي دعمر آخیري شپې اوورځې داداري او کنترول

د حیثه څخه د پرې سختې تېرې دي دسته‌نفسکي و خپل وروړ ته خپل د ژوند ګذارشات داسې لیکلي دي:-

نن چې د دسمبر ۲۲ نېټه ده له ما سره نوف‌سکي مخامخ شو او د مرګ دسزا په حکم سره ئې خبر کړم سمدستي صلیب د

موچیدو له پاره راکول شو بیانې سپین کمیس د کفن په غرض سره رابانده ی واغوستی بیانې لاسونه د دار په ارګی

پورې راوتړله په نورو ملګرو هم دغه ترتیب عملي شو زه په صف کې شپږم وم له موږ څخه ئې هر یو یا دوپښتو او یاد دار

د پورته کولو په غرض سره بېلاوه څو کنټې باد زما واری

راتی او ما هم ملګرو ته دوداع لاسونه اوږده کړې وه چې

ناڅاپه په دې حین کې و ویشتونکو سپاهیانو ته دوا بسی

حکم وشو زموږ پسانه سرو لاسونه ئې ددار له تختو څخه راخلاص کړه او دا فرمان ئې په موږ واوراوه چې زموږ د بخښنې له پاره صادر شوی ؤ.

وائي د دسته‌نفسکی له ملګرو څخه یو په دې حین کې لیونی شوی ؤ او بخپله دده وضعیت هم و لیونتوب ته نژدې ؤ، مطلب له دې ټولو تمهیداتو څخه دا دی چې ده خپل ټوله کیفیت ټکی په ټکی په ناولو کې ضمناً لیکلی او دا څنګه معلومیږي چې ټرنګ کړسوی حادثې وروسته ئې هم هغه کیفیت ؤ یعنی و خپل اصلي وضعیت ته ئې کوم تغیر او تبدیل نه دی ورکړی فلسفه او احساسات ئې د یوه طبیعي انسان په څېر سره نه وه بلکې د میرګیانو مرض ذهنیت له طبیعي حاله څخه اړولی او یو نورمال انسان ئې څخه جوړ کړی ؤ.

خو په هرحال د دسته‌نفسکی په ناولو کې موږ ته کوم داسې کرېکټر هلاویږي چې به همدغه مقدس مرض سره مبتلا وي. په بهوت پر بټ کې یو سړی وایي داسې معلومیږي چې زه د ټولو کائناتو په دننه نظام خبریم. په غیر کون کې ورته ویل کیږي: بلې دا ډېره درسته ده دا یوانزاروونکی کیفیت نه دی بلکه یو بې انتها مسرت دی بل خو پر زړه باندې هغه نقش ترپایه پاتېږي چې د صافو او پاکو احساساتو له لیدنې څخه ئې تراوش کړی دی او هر احساس ئې یو عجیب و غریب مسرت پیدا کوي که دا حالت تر پنځو دقیقو پورې قایم پاته شي زما روح به ئې تاب راوړلو نه عاجزه شي او یقیناً به د مرګ سوګالي ووهي و دسته‌نفسکی ته د کائناتو شکل په دې ډول سره په نظر ورځي د کائناتو د راز افشا د هغه په فلسفه کې ډېر لوی اهمیت لري.

تو تاسې قضاوت وکړئ چې د دې حالاتو اظهار د ناجوړی یو کیفیت نه دی نو څه دی؟ دسته‌نفسکی چې د حقیقت کوم تلاش کړېدی هغه له خارجي ژوند او د باندنیو اثراتو سره ډېر لږ تعلق لري نو څکه ئې په ناولو کې د واقعاتو ډېر لږ ذکر راغلی دی مګر د انسان د داخلیو کیفیتو بیان په تفصیل سره شوېدی او اسرار ئې په دې مورد کې د ناول پر ټوله فضا باندې احاطه کړېده او له دې څخه دا معلومیږي چې ده په زعم له دې څخه سیوا د هستي کوم بل اړخ اشتنه په ورځنی ژوند کې هغه کیفیتونه چې د دسته‌نفسکی په ناولو کې معمولي ګڼل شوېدي شاذ و نادر دي د عظمت منکرین ئې لیونی شکسپیر بولي د دوی دا وینا تر یو حده پورې صحیحه ده ولې چې دې لیکوونکی د نفسیاتو په علم کې ډېر معلومات اضافه کړېدي او د دې علم د عالمانو د خو یو ماهیت ئې و تصانیفو ته ډېر مدد رسولی دی د دهري شخصیت مظهر ئې ټولو تصنیفو دده په تصنیف کې ډېر په نظر رسیږي د نفسیاتو ماهرانو چې پسله

[نور د ۲۷ مخ په پای کې]

لیکونکی: محمد موسی «معروفي»
د حقوقو او سیاسي علومو د پوهنځي محصل

# و ټولنو ته د تحول د راتلو ستر علتونه

د تاریخ پاڼې موږ ته دا ښکاره او څرګندوي چې انسان د پیدایښت له ابتدا څخه د تحول، تطور او پړاو رنګ بل رنګ اخیستلو سره مخامخ دی چې د غور او فایده منو تحولاتو نهضت ( کېده کول له یو حال څخه و بل حال ته) او بد بدلون په مسخ (مخ ګرزېده یوه بدحال ته) وائي چې د مسخ څخه مراد هغه قهقرائي تګ وي چې ځینې انسانان د کوم نار واغرض، ناعاقبت اندېشي یا ناپوهۍ په نسبت د پرمختګ په عوض بیرته وي حرکت کوي مثلاً د اوبو د او یو دولتو له خوا د استعماري مکتبو او استعماري دامو را ایستل کاملاً یو د پرمختګ او بشري نهضت سره نقیض حرکت او غیر له دې څخه چې بشري ټولنو ته د انکشاف

او اقتصادي، اجتماعي او کلتوري ارتقا زمینه وغوړوي هغوی ئې د ژوندانه د سختیو او ناوړو مشکلاتو سره لاس په لستوني

کړل همدارنګه په ځینو ټولنو کې د مذهب کلي تضعیف او یا امحاء چې دا انسانانو د معنوي ښېګڼو تقویه کوونکی او د فدا-کاري او بشر دوستۍ د عواطفو ټینګوونکی دی د یوې ناوړه خبرې په مثال دی.

دا مخ یعني د نهضت سره نقیض حرکت هم د استعماري او هم د مستعمرو ملکو په نقص او ضرر تمام شوي دي لکه څرنګه چې

د اوبو ملکو په منځ کې ئې رقابتي او تسلیحاتي بازار تود کړی چې اوس ئې د جګړې وسنجو او تسه کوونې په زونه ناامنت دی.

خیر، خو تحول چې د هر دوله څخه وي کله د کمیت او کیفیت

په لحاظ ژر یا لوی وي مثلاً د یوې تجربې یا انتباه یا کوم بل عامل په سبب که د کوم سړي ذهني محتویات (افکار) عقائد

خیالات او تصورات بدلون کوي نو بدي دول هغه تحول ژر وي یعني په یوه شخص باوري دلې یوري له لاری. او هم څرنګه چې نتیجه ئې د نوعیت، تاثیر وړاندوالي او یا ښه والي او بد والي په اثر مختلف وي نو

## د ناول اهمیت. پاته برخه

دې څخه دده په متعلق کوم معلومات کړي دي هغه صرف دده

د بیان تصدیق او د هري شخصیت یو مثال دی د متنفسکي د

ناچوړي په بهانه سره د انساني نفس په زور وراز ونه فاش کړي دي او د حقیقت پر ناوړو اړخو باندې پرده اچول د نفس د حفاظت یو دول د انسان جبلي خواهش دی د عام خاوندان له دې

حقیقته څخه له دې حیثه واقف نه دي چې دا رازونه تر انساني شخصیت لاندې پټ دي او احساس ئې د وجدان په ذریعه سره کېږي حکم و هغه نه رسائي نه لري.

تحولات د کیفیت له رویه هم تولهپوشانته نه وی مګرزموږ بحث پرهغو کلی تحولاتو را څرخی کوم چی په عمومی ډول

په ټولو مدنی انسانانو پوری اړه لری اکه لـری اقتصادی اجتماعی تجملی اونور تحولات. دلته باید وویل شی چی د تحول

د مخه پوه بله څخه هم وجود اری چی اصلاح او سمون باله شی. زه فکر کوم چی هـرشی که تحول کوی په اولو مرحلو کی

کرار کرار اصلاح کیږی تر څو چی یو کامل تحول ئې په نصیب کیږی.
[ البته زمـوږ مقصد نهضتی تحول دی ].
مثلا کله چی پـه ادبیاتو کی کلاسیك سبك د خپل تعصب او تنګ چارچوب په نسبت هنر-

مندان پـېزی نه راوځتل نــو دوی ورو ورو د هغه په تصحیح

او د خالیګاؤ په ډکولو پسی شول تر څـو چی روما نتیك

ریالستیك او نور سبکونه چی ادبی تحول په هغو کی واضح

ښکاره کیږی منځ ته راغلل. یا نه دی شی چی تحول کله د طبیعی پیښو او قوانینو او کله بیا د بشر د خپل تکاملی فطرت

آزاده وی چی پـېدې صورت ویلای شو چی ځینی تحولات انسا- نانو له ارادې خارج دی د مثال په توګه د حیوانانو او نباتاتو

د شکل بدلون یادوو.
اوس به نو هغه سترعلتونه چی تحولات راوړی لاندی ذکر کړو.

## ۱- اقتصادی علت

اکه څرنګه چی دا یو حقیقت دی په نړیـ کی د هری پیښی یو

مهم علت اقتصاد دی هم دا رنګه دا حقیقت زموږ د مطلوب سره هم سرخوری.
هره تولنه غـوادی چی د خپلو

افرادو د معیشت د باره یوه سمه لاروموی او هم د هغو د سعادت

او آرامی عوامل راغـونډ او اجتماعی عدالت پکښی خپور

کړی. ځکه نو څو چی تولنی اقتصادی تقویه او وقایه نه وی

او د هغو افراد د خپل معیشت او ګذران او د ضروری موادو د تهیې له نقطه نظر څخه ویو آسوده ژوند نه خوشبین نه وی خامخا

چور، چپاول، اجتماعی عدالت ورانی، غـلا، قتل او قتال او بالاخره راز راز اړو دوړو نه پیـدا کوی.

څرنګه چی څو پیړیـ ترمخه انګریزان په نړیـ کی د یوه ګوټه او وروسته یا نه قوم په نامه یادېدل. خو اوس د اقتصادی

تقـویې او اجتماعی تحولاتو په نسبت په نړیـ کی د لوی یو دولتو په کتار کی ولاړ دی چی پدې دول د انسان د آرام او باو قاره

ژوند کولو د پاره اقتصاد د یو علت په توګه تولنو ته راز راز اقتصادی تحولات راولی چی کـه مـوږ د کـمونـ

لـۀ جـامـعې څخه پیـا تر فوډالیزم، بورژوازیانو، فزیوکراتـانو، کپیټلستانو او مارکسیستانو پوری ټول حالات

وګورو، نو ربښتیا معلومیږی چی اقتصاد هغه لومړی علت دی

کوم چې بشر ته ئې ډېل ډېل بداوتونه راوړي‌دي.

## ۲- اجتماعي علت

ارسطو وائي: [انسان يو اجتماعي حيوان دی] انسان د خپل فطرت په مطابق د يوازې ژوندون څخه متنفر او يو ګډ ژوندون ته رغبت لري. خو د بدمرغه بدې ګډ ژوندون کولو کې ډېرو بااستعدادو او قويو کسانو د ساده او ضعيفو خلکو له سره ېې څخه ګټه اخيستې او دوی ئې همېشه د خپلې ګټې د خدمت او شاقه کارو د کولو دپاره استثمار او په کار اچولي دي چې بدې دول به تولنو کې د مختلفو طبقو جوړېښت حتمي شوی‌دی. د توتيسم [د بدوي قومونو اجتماعي او مذهبي کرکټ] له مطالعې څخه ښکاري چې دا اجتماعي طبقې او ددغو ترمينځ امتيازات دابز بدوي انسانانو له ژوند څخه راشروع شوي او سه پورې جريان لري چې په اوسني حال کې د

د جنوبي افريقا طبقاتي رجحانو ته زموږ د خبرې دپاره ژوندی مثال دی. تواقويا د ضعفاو د استعمار او کمزوري د غوښتلو سره د مجادلې او د خپلو امتيازاتو د اخيستلو دپاره يو د بل سره په مجادله بوخت دي چې کله ئې ضرر تا که کله ئې ګټه ور اجتماعي بداوتونه منځ ته راوړي دي.

## ۳- کلتوري علت

موږ چې کوم مفهوم ته د کلتور يا ثقافت له لفظ څخه اخلو هغه په عرف، عنعناتو، مذهب، ژبه، نژاد، اخلاق، عقائد، معارف ادب، موسيقي، آرټ، صنعت تجارت، زراعت، عمرانـاتو سپورټ او نورو باندې بنا دي [فرانه بوام]: کلتور او مدنيت لوی عالم وائي: چې د کلتور او مدنيت او اقتصاد د علم په اصطلاح تولنه څخه شيان چې په نړۍ کې وجود لري هغو ته سرمايه وايي. مقصد دا چې کومه سرمايه چې انسانان ئې لري د هغو د کلتور

او فرهنګ نماينده او ښکاره کوونکي دي. د نړۍ مختلف قومونه تر مختلفو جوي، اقليمي جغرافيوي او منطقوي شرائطو لاندې راز راز ثقافتونه لري چې کله د يوه قوم او کله د بل په دلې مدنيت د نړۍ په خپلو ښهرتونو د کوي کله سومريان، اسوريان کلدانيان، مصريان، فنيقيان او بابليان کله يـا چينيان روميان او اروپائيان د مدنيت لړزو بړز نورو د مخه کېږي.

د مخه موږ وويل چې عرف، عنعنات او عقائد او اخلاق په کلتور کې ډېر دخيل دي نو واضح ده چې ځينې رسومات او عقائد داسې د انسانانو افکار اشغال او ورانوي چې د هر دول ترقي علم دوستي، معارف او نورو څخه ئې بېرته اچوي چې بيا د هغو عنعناتو خاوندان د داسې ناوړو دودو او خرافاتو په ور کولو او د هغو په پرېښوولو کې مخه او شروع کوي د علم تبليغ او نورو لارو څخه د هغو په اصطلاح او بانړك کولو پسې

کېږي . کله بيا دځينو مقيدو
دودو په لاتينګولو او امتداد
کي زيارونه باسي عين تردي
چي هغه لا په اساسي قوانينو کي

هم داخلوي چي دهغان درفاه
دپاره هغه اصلاح اوورپسي په
لوي تحول بدل کړي . همدارنګه
مذهب چي د اجتماعي امنيت

اوعدالت دتامينولو دپاره منځ
ته راځي وروسته تر تطبيقولو
اومثبتي يامنفي نتيجي ور کولو
څخه ملته قائم مقام او يا ايسته

کېږي .
د بله طرفه وينو چي مستظرفه
صنايع [ نقاشي ، سنګتراشي
رسامي ، موسيقي او نور ] چي د

يوه طرفه دا قوامود کلتور معرف
اود بل پلوه دهغو تفنني او تجملي
ذوق ښکاره کوي نو ددې دپاره
چي ددوی ذوق او آرزوګاني

ښه تر سره سي او هم په تېره کي
دهغوی دمعرفي شهرت ، علمي

اومدني نفوذ ، دتجارتي بازار
ګرمولو اود سياحينو دجلبولو

سبب وګرزي دخپلو خاوندانو
له خوا څخه پوار ثقافي سير طي

کولو ته اړ کېږي چي په نقاشي
سنګتراشي او موسيقي کي د
کوبيسم ، فوتوريسم ، سورئاليسم
اکسپرسيونيسم دسټايلو راتلل

کاملاً د يوه کلتوري تحول
څخه حکايت کوي .
همدارنګه ادبيات چي د يو قوم
احساسات ، تصورات ، تخيلات

واقعات او روحيات ښکاره کوي
او هم د تولني داصلاح او راز
راز تبليغاتو اوداذهانو دتنوير
دپاره د انسانانو د ژوند مهم

مکمل دی دزمان او مکان د
شرائطو سره سم هر وخت و تحول
ته اړ دي چنانچه د کلاسيک سبک
چي د يونان څخه شروع سو

رومانتيک سبک چي په اوله
پېړۍ کي اروپري د فرانسې
څخه شروع او وروسته په المان
انګلستان او روسيه کي پسې

تعقيب سو . همدارنګه دورئاليسم
نيچوراليسم ، امپرسيونيسم
سبکونه دا موږ ته ترېښوي چي
کله په کوم ډول يوه وخت کي د

تولو ملتو او يا يوازې د يوه
ملت ثقافت په تولنو کي دتحو-

لانو باعث ګرزي .

## ۴ - سياسي علت

دولتونه چي د خپل قلمرو

موقعيت ، نفوس ، طبيعي منابعو
دنفوسو دنګاوت او استعدادو
ساحوي صلاحيت او نورو له
رويه مختلف دي ځيني داقليت

او بعضي بيا داکثريت دولتونه مشهور
کي راځي او طبعاً دخپل اقتدار
او سورنيتي له کبله هم ځيني
زورور او ځيني د پرياګني وزري

وي . نو دولتونه دخپل داخلي
اقتدار دتطبيق اوجوړ سره
قوانينو دداخلي امنيت دساتني
دپاره له يوې خوا او د خپلې

خاورې دآزادۍ او عالي اقتدار
دساتني ، مقاومت او پېژندني
دپاره له بله پلوه مختلف دسياسي
اداري راز راز دولونه منځ ته

راوړي . پدې حال کي هغه
هيوادونه چي په خپلو داخلي

اوخارجي پېښو کي نا کام شوي
دي دنورو تر تعرض او تېري

لاندي راغلي دي . که څه هم د
ځينو سياست پوهانو په نظر په

داوسنی تکاملی دولتونو جوړښت د پر نوی دی خو به بخوانیو

تـولنو او قـومـو کی چی بین المللی او عمومی مناسبات

د پر تینګک او هر دولت به ځان

اخته ؤ لکه د یونان ښاری

دولتونه چی د هغوټول سیاسی تشکیلات به یوه محدوده ساحه

پوری مربوط وه مګر وروسته له هغه د ګه ارتباط نسبتا متکامل

شکل اخستی د روم امپراطوری ئې منځ ته راوړه هغه راز

دغه سیاسی تشکیلاتو د مسیحیت دظهور سره یو نوی رنګک اختیار

کړ او د پاپ سیاسی قدرت ئې موجود کی چی د موضوع د

اوزدوالی به نسبت له تشریح څخه ځان ژغورم خو دومره

وایم چی د مختلفو سیاسی قدرتو تر کشمکشو او د فیوډالیزم

او وروستې د اوبسولوتیزم تر ظهور وروسته سیاسی فلسفې

به دوو متخاصمو فلسفو د سوسیالیزم او کپیټلزم تحول او

ارتقا وکړه اما د بشر د پوره امنیت او د نیاهی څخه: ژغور او

دپاره نور هم د سیاسی سیستمو نو تحول او تکامل ته اړتیا

لیدل کیږی.

## ۵- مجادلوی علت

یو ههیږو چی به نوا و مضامینو کی د تصنیف او کتنکو ربانو

مقصد د مسائلو اسانه درک او

زر پوهیدل دی نو دانه که څه هم د طبیعی عـوارضو سره

مجادله د ثقافت تر عنوان لاندی څیړل کیدای سوای مګر د

موضوع د تجرد او تجزیې په لحاظ مود بو جدا علت په حیث

قبول کړ.

د اختراع، ایجاد، بداعت او

ابتکار قوه چی یوازی د انسان د نوعی به برخه دی تل انسانان

کامیابه کړی دی چی به هر خوا کی باید پر یوه اولنی

بدوی شی بانـدی قناعت او کفایت ونه کړی. د نیږی له

دوري څخه بیا تر فلزی دوري او بالاخره تر اوسه انسانانو

کوښښ کړی دی او کوی ئې چی د طبیعی پیښو سره د مجادلې

په لار کی نوی وسائل اختراع کړی او پـدې وسیله طبیعت

ځان ته تسخیر او استخدام کړی

ډول ډول وسیلې او نقلیاتـی

مخـکنی، بحری، هوائی وسائل

دلارو دلنـډولو او د لیرو او

اږدو منطقو د مبلولو دپاره

فلاحتی او زراعتی ماشینونه

داو بو لګولو، درشو (غلجانو)

د زر رسیدو دپاره دوا ګانی

دانسانانو د صحت او د مضرو

حشراتو او خزندو د ور کولو

دپاره همدا ډول د لګولو او

نودولو یا بخولو اوزارونه او

نور د پر د پر شیان ددې مقصد

دپاره منځ ته راوړه شوی دی

ماسوا له دې څخه تسلیحاتی

او حربی آلات هم یا د خپل

امنیت او یا پر نورو د غلبې په

غرض جـوړیږی چی به هر

صورت او سنی انسانان د

تحول او تجهیز پـه لحاظ د

خپلو اولنیو نیکه ګانو سره

هیڅ نشی پرتله کیدای.

د چینې ادبیاتو څخه: ژباړونکی: محمد احسان «کارگر»

# سور گل

یوه زړه وره ښکلې ښځه د پنجرې له څنگه ناسته، په ډېره خواشینۍ او ناامیدۍ سره ئې د وریښمین بالښت مخ گلدوزي کاوه، ناڅاپه ئې په گوته ستن ننوتله، له هغه څخه د وه څاڅکي وینې د بالښت

پر سپین گل باندې توی شوه او هغه ئې د سور گل په بڼه واړاوه. - اوه! ښځې پوسود آه کښلو، د خپل محبوب په یاد کې شوه او دائې په زړه کې گرزي چې دا د جنگ په میدان کې ده او ښائي همدا

اوس د هغې وینې سپینې واوري سرې کړې وي.

ناڅاپه سرپورته کوي او له لیرې څخه د آس د پښو زغ وغوږ ته رسیږي، ښائي محبوب بلاني بېرته

راگرزېدلی وي؛ اما زر پوهیږي چې محبوب ئې نه دی راگرزېدلی، ځکه دغه زغ د دې د زړه دی.

چې په ناآرامه توگه ئې په سینه کې غورځي.

وروسته بیا د وریښمین بالښت شاوخوا ته له په سپینو وریښمو گنډي، ځکه د دې څو څاڅکي

اوښکې د هغه تو کر پر گلانو څڅېدلې وې.

---

## هغه تللې ده

نورنو ماته د سرو گلانو او شنې سبزې سوغات مه راوړه. آیا خبر نه یې؟ چې زه خپل مین

هېره کړې یم.

اوس نو وماته فقط د گلانو وچې پاڼې د ارمغان په ډول راکړه.

زه خپل مین پرې ایښی او ئن شپه هر کله چې لمر د غرونو تر شاپټ شي، شنه جامه به واغوندم او مخ به

پر صحرا و نیسم.

څو د هغو گلانو په منځ کې چې زما د ښکلي محبوب خونې وه په زړا زړا خپلې اوښکې لکه سپینې

مرغلرې د نښې په ډول هلته توی کړم.

## رنګې پلوشې

په دنیا کې دوه قدرتونه شته: یو توره، بل فکر. د هر وخت توره تر فکر مغلوبه شوې ده.
«افلاطون»

عقل یو قوه ده چې دنیا اداره کوي.
«امرسون»

له انسان څخه که عقل واخلې، بل نو هیڅ مهم او قیمتي شی ورته نه ور پاتېږي.
«هامیلتون»

راتلونکی وخت په هغو کسانو پورې اړه لري چې د هغه آرزو او پر هغه باندې یقین لري.
«اتاتورک»

ازادي هغه مېوه ده چې څوک ئې د بدن مستۍ دپاره، او یو شمېر ئې د سر مستۍ دپاره خوري.
«....»

یوازې هغه خلک لوی دي چې د علم او پوهې عاشقان وي، نه هغه خلک چې د علم او پوهې سوداګران وي.
«.....»

د ډېرو خلکو دپاره آزادي د دکان سرمایه ده، او د یوه شمېر دپاره د روح سرمایه ده.
«.....»

اې هغه سړیه چې د خپلې هوساینې په فکر یې له نورو څخه ولې هوساینې منع کوې.
«.....»

KÅNDAHAR

MONTHLY MAGAZINE

OFFICE:-

PRESS DEPARTMENT

KANDAHAR, AFGHANISTAN

EDITOR A.M 'KARZI'

(OCTOBER-AND-NOVEMBER) 1962

GOVERNMENTAL PRESS